

که کرونده کې ګنه غبرګه وله وسوځيږي
لوګر به تکنده غرمه کې چيرته دمه وکړي

# کرونده



احمد تکل




د افغانستان د لیکوالو د انجمن له خپرونو څخه

د کتاب نوم : ګرونده

شاعر : احمد تکل

تیراژ : ۱۰۰۰

کال : ۱۳۶۹

مهتمم : شفیقه

د چاپ ځای : دولتي مطبعه

د لیکوالو د انجمن پر له پسې نمره : ۲۱۳

د اطلاعاتو او کلتور د وزارت د نشر الو

د ریاست د ثبت شمېره ۴۳۱

ا . . . ! ؟

څوک ناري راوهي

هو زه پخپله يمه

تر بوړبوکو نه سر گرزني

تر بادو نه ستړی

تر تورې تږی

تر چړېنه وږی

تر دا ره موږ

تر سلاخې نه خړوب

ا . . . . ! ؟

څوک ناري راوهي؟

دا زه پخپله يمه

احمد يم

# په پښتو شعر کې يو نوی تکل

# او

# يو نوی اميد

«کرونده» د ځلمي شاعر احمد تکل د شعرونو لومړی مجموعه ده چې د ۱۳۶۴ او ۱۳۶۸ کلونو تر منځ موده کې شعرونه پکې راغونډ شوي دي .
ددې مجموعې ډير شعرونه د ازاد شعر په فورم کې دي او اړخه غزلې هم پکې راغلي دي .

احمد تکل په دواړو شکلونو کې خپل استعداد ازمايلي دي خو زما له نظره دی د ازاد شعر ښه شاعر دی او په دغه ميدان کې چې ده کومې تجربې کړي دي نوي او کاميابې ښکاري .

خو دا خبره په دې مانا نه ده چې د ده غزل دې کوندی له نظره وغورځول شي د تکل غزل هم ځانته جلا ځای او مقام لري .

که څه هم په دې مجموعه کې د احمد تکل د شعري کاروپیل پېلګی را
ټولی شوې دی او په دی برخه کی دراتلو نکی لپاره دځغل اوږد مېدان په
مخکی لری خو بیا هم ویلی شو چی د احمد تکل دغه شعرونه د هېواد د دوروس
ستړیو دولسو کلونو د پېښو او حادثو ژوندی تصویر ونه دی چی لوستونکی
ځان ته را کاږی او خپل اغېز ښندی هغه د مسافر په شعر کی وایی :

ته څی او سا د لته یوه وطن غمو سره یوازی پر یږ ودی

ته څی او سا تیاری ته

د ولس کلنی شپې ته

د لته یو ازی پر یږ ودی

د تکل شعر د سوزیدلی او کړیدلی وطنوال د ژوند شعر دی، د درد نه ډک
او د ردمن شعر چی هر شعر یی د هېو اد د زخمونو او ټپونو ویندوی دی .
هر شعر یی د دردونو او زخمونو یوه تابلو ده هر شعر یی د دی وطن یوه کیسه
ده یوه پېښه او یو بشپړ انځور چی د وطن هر بادر ده انسان پکی خپل د ردونه
او ټپونه وینی .

هغه په دویم ټپوس کی وایی :

غم دی سوکه ، سوکه په زړه باندی د رنیږی
سینی !

زه دی نا راسته وخت کی تا او که وطن
وژاړم

د احمد تکل شعر ځانته څرګندې ځانګړتیاوی لری او هغه دا چی زموږ د
کلیو ، بانډو کروندو ، کروندګرو او سپین ږیرو ولسی خلکو د ژوند هغه
کره وړه انځور روی چی د خپلوتو لو ځانګړو جزئیاتو سره یې په خپل
شعر کی راخلی او هغه شعری ترکیبونه او مفاهیم ورته پیدا کوی چی په

ځانګړی ډول د پښتنی چاپیریال رنګ لری او پردی نه ښکاری . زما په نظر د شاعر مهارت همدا دی چی د خپل مقصد د بیان د پاره پخپله ژبه کی خپل ماحول کی پخپل کلی کی او پخپلو بانډو کی خپل الفاظو لټوی نظرهغو مفاهیمو او ترکیبونو ته چی تکراری وی او له بلی ژبی نه یې را اخلی . د تکل په شعرو نو کې د ښه اصل ته پام نیول شوی دی او ځینی مفاهیم یا ترکیبونه خو یې نادر بریښی لکه د ستر ګو مسو ر ځنګل ، د زړه نړیدلی کور ، تا ندی بوری خیړی ، مور نړی ځانګی او یادا . مرعه .

ما دې په دارکې د مارانو د کاکل وزانګل

که څه هم ما احمد تکل ته وویل چی د مجموعی نوم د شاعرانه نوم پرځای زراعتی نوم دی خو کله چی یې د ده شعرونه ولوستل او د پورتنیو خبرو سره سره د ده د شعر انځور زمونږ د کلیوالو بانډو نځورا دی او د کروندې ، درمند ، حاصل ، د غنمو ژیړ رنګ ، ریبل ، او پولی پټی ذکر پکی په بیا بیا او ښکلی طریقه راغلی دی او شاعر د خپل کلیوالی ژوند نه ستا ښکاری نو همدا وجه ده وی چی شاعر ده د کرو ندی نوم د هماغه تاثر په وجه ایښی وی لکه چی د لوی خوشحال د یو شعر په استقبال کی وایی :

ما د یوه کال د غنمو د درمند حاصل ته

ستا دراتلو د یو ماښام قدر ته

لاری ته ونه کتل

ما د خلورو کالو درمند واخیست

او ته رانه غلې

او زما ژوند ژیړو غنمو خوړ

ماتور ولاړو ته کتل

کتل

کتل

ته له خلورو دریندو وروسته

راورسیدې

څو کله ؟

چې رنګ د ژوند سې د غنمو رنګ شو

څو د کرو ندې ، درمند ، ریبل ، حاصل د غنمو ژیړ رنګ او داسې نورو ورته کلما تو کثرت د تکل په شعرو نو کې بیل بیل رنګ او بیل بیل خوند لري چې تکراري نه ښکاري په لومړي تپوس کې بیا هم دا کلمات دی خورنګ او خوندي بیل دی:

وسې ریبل

وسې ریبل

پښو کې سې دې واچول

زه درنه تپوس کوم

نورخه غواړې ؟

غواړې چې د لمر له درمنده نه درته وړي په اوږ وراوړم؟

سمه ده . .

وزرونه خوسې بیرته را

د تکل په شعرو نو کې چې بل کوم شی ډیر تر ستر ګو کیږي هغه انتظار دی د هغه چا دراتګ انتظار چې دفصلونو د رسیدو په نیټې د درمندونو داخیستو په نیټې او د غنمو د ژیړو الی او رسیدو په نیټې پوري اړه لري او تر دغې نیټې پوري یې شپې ، ورځې او سودې شمیرلې او د دغه اوږ د انتظار په پای کې یې رنګ د غنمو د ژیړ رنګ په څیر ژیړیږي او ژوندیې ژیړ غنم خوري . د غه یاس او نا امیدی چې په ټوله مسلطه ده د شاعر په شعر کې

هم ځای په ځای له ټولو ځانګړ تیاو سره راښکاره کیږي او بیا بیا د کرو ندي حال سوړ ته په دې ډول بیانوي :

دا ته د ویری کر ګر
غنم په لورنه ،
په کار تو سوری بې
ته و لاړې
او دسپر لی د خړو وریځو چترو نړیده
د هسک په پر انخه غیږ کې
او س باران نه وریږي
او دریا بو نو کی کر بوري ناځی
ته و لاړې
د کلي سوی خاوره
نور نو غاټول او لو نګ نه زیږوي

او بیا بیا هم په دې اسیدچې که له دغه اوږد انتظار نه وروسته هم سترګی د ستر ګوسره ولګی نو :

ته به سی ستر ګو کې کندړ کندړ وطن وو یني
چې ګو درو کې یې ښي ښي بهیږي وینه

خوله دې ټولو نا اسید یوسره بیا هم د شاعر په شعر و نو کی د را تلو نکی لپاره د اسیدځه ځر کو نه شته دی او په را تلو نکی باندی باوری دی. هغه د سبا وون په شعر کی وایی :

یوه ورځ
زموږ د کلي د کلاله وره نه
نوره خند ارانه ځله


ac

خندا کوچې شوه بیارانه غمله، لیری لاړه له کوچیا نوسره

. . .

خو لاهم
دسوی کلی د کو رونو د کړ کیو توری دړې
دلمر په لور خلاصی دی
دنارنج گل یې دیوی دردونکی حادثی ترسیم دی لکه څنگه چې
دشاعر هر شعر یو بشپړ انځور ریوه ښکلی تابلو او د یوی تراژیدی کیسی
بیان دی، دنارنج گل هم دټولو ښیگړو لرونکی تابلو ده :

دشپې خو نی خپړو
دچټی پیغلی سرسری سینه کې
دسرو نارنجو بڼ ته لاس غځاوه
او پیغله وترهیده
ستوځپود سیند بستر کې په غړسبا غړسبا غاښونه چیچل
او د کابل د عپاشیوا و گناه خیری یې
خپلو خپړ وکې سروړلی او سینځل
پیغلی له تنلهې نه دو یښوویا له وخنډله ویې پوښتل :
ـ کابله چیرته دروسې ؟

. . .

همدا رنگه د تکل په شعر و نو کې د « ته ولاړی او بیا رانه علې »
موضوع ډیره درد ناکه ده چې په مجموع کې دده په شعرو نو کې هماغه
دانتظار خبره راسنځ ته کوی. دسلکیا ربابا دشعر په استقبال کې
چې ده کوم شعرو یلی دی او د کابل نه یې دزا نهود تللو
افسوس ښکاره کړی دی ډیر په زړه پو ری . د ی خو شاعر یوازې

په دي بسنه نه ده کړی او دیو رښتین شاعر په حیث یې پخپل هر شعر کی د تنګ علتونه هم ښودلی دی او همدغه وجه ده چې د بیرته راتګ انتظار یې هم دردناك او اورد دی .

هغه وایې :

کابل ورستیږی غاړې تر غاړې
له تندې وسوې چاپیره شاړې
نه راستنی‌شوې نه راستنیږی
دزا نو کله‌ی چې چیرته لاړې

لنډه دا چې د تکل شعرونه دهیواد دوروستیو کلونو او شیبو دحادثو ، پیښو شعری انځو رونه دی چې دشاعر احساس او عاطفه پکې نغښتی ده او د هیواد سره دده دمینې او احسا س ښکارند وی دی . نو په وطن او خلکو مین شا عر پرته له دغو ترخو حقایقواو دخپل زړه دوینو نور څه وړاندی کولی شی هغه‌هم دشعر په ښکلی رنګینه او خوږه ژبه چې هروسرو اغیز به یې تلپاتی وی .

احمد تکل د پښتو داز ادشعر یوه راتلو نکی ځلانده خیره ده‌چې خپل ځانګړی پښتنی رنګ اولاره‌لرې او ساته پکی د بل چا رنګ نه ښکاري . که تکل دخپلو معصرو فیتونو لږه برخه هم د پښتو شعرته وقف کړی، نوزه یقین لرم چې په راتلونکی وخت‌کې به‌د آزا دشعر یوستکښ او نما ینده شاعر وی . که د تکل دشعر دغه پښتنی رنګ او ځا نګړی تګ‌لو ری د پښتنی الفاظو، د پښتنی‌چا پیر یال دموجوده محاورو ، د کلو او بانډو دسوچه ځانګړتیاو نه لږ انحراف هم و- کړی نوبیا به تصنعی ر نګ پیدا کړی اوخپل پښتنی طبیعی ر نګ‌به با یلی . امید دی چې داسی به ونشی .

تکل ځلمی شاعر دی خو شعري ي دځلمیتوب دعمرنه پوخ ښکاري

خو بیا هم ګیډ ای شی کره کتو نکوقه پکې دو زن پسه لحاظ ځنې

نیمګړتیاوی اویا د نور وارخو نو په لحاظ څه کمی ښکاره شی ځکه

چې د کره کتنی له مخې هیڅ یو اثر هم د نیمګړتیا و نه خالی نه وی

ما کره کتنه نه ده کړی او هغه څه چې مې ویلی دي زما د نظر او

احساس خبره ده او له بله پلوه که خدای ګول د تکل په وړاندې

اوږد عمر دی زه باوری یم چې که هغه دژوند نورو مصروفیتونو

مصروف نه کړ نو هغه به په دې میدان کې نوې تجربې و کړی او

را تلونکې شعر و نه به یی لا دپښتو شعر مینګار ګړی .

زه په پای کې تکل ته ددغی مجموعی مبار کی وایم او په

پښتو شعر کې یې یوه ځکلی زیاتونه بولم دده دلا بریالیتوب په هیله

بریالی باجوړی

کابل ، دریمه ګارته

۱۳۷۰ کال دحمل ۲۳ مه

# يو ه لنډه يادونه

ډيرو درنو او قدرمنو دوستانو !

هغه څه چې په دې مجموعه کې راټول شوي، زما د ډيروښو شاعرو دوستانو په وينا زما د شعرونو مجموعه ده او هيله لرم که دا ټوټې په رښتيا سره شعرونه وي وکولای شي ستاسو د سليقې او غوښتنې سره سمې وې او ستاسو ننده ماته کړې شي .

ما که څه ليکلي د خپلو ډيروښو لارښوونکو او دوستانو په سرسته د هغو په ليکلو بريالی شوی يم

د شعر د شکلي ژانر په باب ډير خلک ډير څه وايي . خو زما په نظر هر شعر تر هر څه مخکې بايد يوه نوې خبره او معرفت ته د لوستونکي درسولو په خاطر يوه نوې موضوع ولري. زاړه او تکراري مفاهيم که څه هم په ښکلي فورم کې وړاندې شي له خپل سنتي او د ويز ارزښت نه پرته په يوه ټوټ هم نه ارزي .

زما په نظر نو د زماني شاعر بايد د ناولو او کرغيړنو مفاهيمو له کارولو نه ويره ونه لري خو د شاعر کمال به په دې کې وي چې هم د غو کرغيړنو مفاهيمو ته صيقل او ځلاور کړي، تلطيف يې کړي او په شاعرانه اثيري ماحول کې يې د لوستونکي له پاره د منلو وړ وګرزوي .

په ما باندې کم شمير دوستان ډير وخت د «سپيتانه» او «کب» د شعرونو په خاطر تنقيدونه کوي . هغوی وايي چې د سپيتانې يا سپې

د شفا هیموښته والی په شعر کې سم کار نه دی او یوځل خوسی له راډیو
نه دا هم واورېدل چې زسوړ له شعر نه د « زولوژۍ » علم جوړشوی .
خو زما په نظر شعر یوازې هغه څه نه دی چې باید په اورېد و سره یې
د عاشقانو د سترګو تور والوزې او لوستونکی له ډېر زمانتېك او سانتی-
مانتال احساس نه بېهوښه شي . زه وایم شعر نه یوازې باید یوڅوك
وژړ ولی شي بلکه دې ته یې هم باید وهڅولی شي چې مثلاً ټوپك ته لاس
کړي او خپل کسات واخلي . خو شرط یې دا دی چې شاعر په خپل دغه
شعر کې وکولای شي شاعرانه لطیفا وزره وړونکې ساحول ایجاد
کړي .

د شعر او د شعر د څرنګوالي په باب ما خپلې ټولې خبرې نه دي
کړې ، که ژوندوه نورې خبرې به نور وختونه سره وکړو . خو غواړم
څو ضروري یادونې تاسو درنو دوستانو ته عرض کړم او د هغو ګرانو
ادیبانو په وړاندې خپل ارادت وړاندې کړم کوم چې په یوه ډول سره
د دې کتاب په ترتیب او تنظیم کې د خالت لري :

ګران لطیف بهاند له کوچنیو الې زما روزنه کړې او محترم
حافظ صاحب، هیوادمل صاحب او انځور صاحب (خدای دې یې مل شي )
زما ډېره پالنه کړې . استاد بریالی باجوړی ، استاد خالق رشید ،
اکبر کرګر ، خزان صاحب ، افضل ټکور ، سحك صاحب او ګران یون
زما د شعرونو همېشنې اورېدونکي وو او د وی زه زیات هڅولی یم .

د ګران استاد روهي صاحب هغه یادښت چې مسافر انځور صاحب
ته یې زما د شعرونو په باب لیکلی وه تر اوسه ما پخپلو ارزښتناکو پانو
کې ساتلی او سنلی استاد ډاکتر صاحب زیار زما د پیژندلو لپاره

زیاتی هڅې کړی اوزه له‌دو اړونه ډیره مننه کوم اودزړه له کومی هیله لرم چې‌خدای پاك ورته اوږ دعمر ور کړی .

پوهنمل استاد اسد دژوند هنراو ښکلا په‌پیژندنه کی نه‌یوازی زما بلکه دټولو شاعرانو اواد یبانو دیرښه ملګری دی .

له ګلاب‌ننګل‌او علی احمد اشرف هوتك نه هم دزړه له کومی مننه کوم چی تل یی زما شعرونه او ریدلی او ټکله ناکله خوږیی ژړلی هم دی .

دګران استاد واصف باختری دمینی اومحبت په‌وړاندی دمننی‌له څرګند ولو نه زماژ به‌قاصره‌ده .

په‌پای کی غواړم ددولتی مطبعی دمانوتایپ دڅانګی له کار ـ ګرانواو ددغی څانګی‌له مدیر محترم « زلمی‌محمود » او محترم ـ استاد عبدالواحد څخه دزړه له کومی مننه و کړم چی د نوموړی کتاب په ترتیبولو کی‌یی‌هیڅ ډول مرستی‌نه دی سپمولی .

په ډیرد رنښت

احمد تکل

# سرليکونه

# داخلي

داخلي... !

ښاپېږی زما دبی قانونه تېر

دیو سخکښ په امر

دلته دهسک په لوری

لاس څخونه کوی .

داخلي !

ښايي زما دبې قانونه تېر
دسرو ويالږو نو ، يادگار ونو غيږوی
هر ساز يگر به کوچنيان وزلميان
ورته سرونه په بيلهی لگوی
داخلي
ښايي يووخت
زما دښار ديا دونو په خيالي پانه کی
چې دزمان سږوبه بده رپولی وی په «سرو» (۱) انځو رشی
خو... ساته
ساته داخلي دو سره تش نه ښکاری
ساته ښکار يږی چی داخلي به دغره لمن کی
يوا رما نجن وږی وی
چې دعمرو نوا رما نونه يی زسوږ خواږه ذی
ساته داخلي
يو نوم ورك سپا هی دی
چی خپل آهو نه هره ورځ
اتم آسمان ته ليږی

۱۳۶۳ کال ـ دحوت سياشت

---

۱ ـ سره ـ طلا

« که زه نه وای عشق به تا لره بلل څوك
په پا لنګ به دی دا هسی درختل څوك»

خوشحال ختك

# که زه نه وای

ما د یوه کال دغمو ددرمند حاصل ته
ستا در اتلو دیو ماښام قدرته
لاری ته ونه کتل
ما دځلور وکالو درمند واخیست

اوته رانه غلی
او زما ژوند ژیړوغمو وخوړ
ساتورو لاروته کتل ...
کتل ...
کتل ...
او داتسل را سره
چی «بدرگه که محبت را سره نه وای »
نو« یك تنها به په خونخو ارو لارو تلل څوك »
* * *
اوس کال
زما ستوما نه سترگی
د درمنده دلویی کوتی شا ته
ستا په هیر جنو ستر گوو نښتی
ته له خاورودرمند.و وروسته راورسیدی
خوکله ...
چی رنگ دژوندسی دغمو رنگ شو
* * *
نن ساز یگر دی دویالی په غاړه
شین بیا لښی په لاس کی ونښیځه
بیا دی آرام ومسل
او گونگوسی دی وکړ :

چې «که زه نه وای
تا به ښار لې کومې ورکې لارې» ؟
دا خوسنم در سره
خو که زه نه وای
«که زه وای عشق به تا لره بدل خوکې
په پالنګ به داهسې در ختل خوکې»

کابل ۱۳۶۳

# غزل

ستر ګوسی در و کتل بدګوی که ښه ګوی
دمحل خویی و کتل بیا به داسی نه ګوی
سترګی دی مسور ځنګل ،زړه سی نړیدلی ګور
ستا پسرلنی کاته ، تش کنډر ګی څه ګوی

بیا سی که تپوس کوی مه راځه په ورځو کی
سترگی یی کوی نشی ، هسی چی بانه کوی
ډیری بی لوظی دی وی تلوکی رانه هیری شوی
څه نادودی نوری به ستاد ناز راتله کوی
پوه ده چی څور یږمه هسی تجاهل کوی
سخ کی سی رقیب ستایی یا دسی ددښنه کوی
را سی چی په مخه شی ټول گوډر گودرشمه
نجونی شیطانی خندا ، زما په گریوانه کوی
سترگی دی غزل وایی ، زه یی هسی لیکمه
ته دی سترگی مه تړه لیك یی زما زړه کوی
۱۳۶۳/۶/۱۰

# غزل

په زړه کې مې ګرځي د ګناه دهېلو زړي

حالا تومې اخستي دا وريښې ژبې څړي

په څه پاندې مې تور د قدمونو په محل پردي ؟

زما د قدم نښې خو سېلیو هسې وړي

وفا را پاندې بنده کړه یاران بهمې خپه شی
له لاسره چې ملهدی ، داخو تول دې دزړه ستړی
مغروره پاندې مه شه کهدې زانګم په کمڅیو
پری شوی مې له پاسه دامیداو هیلو پری
له تا نه گیله نه کړم ، ناپښتونه زه پښتون یم
ته زماد دژوندی نه یې ، فلک راپاندې کړی
انګار په مې ایروزه لاندې هله سپرغی باد کړی
که بخت مې له فلك څخه شه نوی وی راوړی

١٥ ر ٥ ر ١٣٦٣

# غزل

سەرمەدی جەنگەڵ کێ بەبا بوو لە رووپەڕە غواری

هەڵەمی هەموو سەردە ، نورچەدرنە نەخواری

بەغلی! تەکەشکلی بێ، زەخوەم پشتوون پمە

بوچە بە دڵ بەنەوا بەزیاتی هە خواری

هوښدو ته خندا راشي یادې د زخمو نوګړي
زه یې پروانه لرم، زخم پښتانه غواړي
وصل سحر شوی دی، نوي جفاګانې کړه
زړه مې خوږ شوی دی نوي مېلمانه غواړي
ما دلیونو اثر ومانه په ګمان باندې .
مینه عقل نه منې، مینه مجنون زړه غواړي
قتل دعوانې زما څنګه شو تاوان په تا
اوس به یې منې ضرور، بدغواړي که ښه غواړي
اور دا ژنګوګی دی وریتې زما شو الهي شوی
ګوره لیونې سترګې، اور لره اوبه غواړي

۱۱ر ۵ر ۱۳۶۴

# غزل «۱»

«۲» «کابل» ورسته‌یږی ، غاړی‌تر غاړی

له تندي و سوي ، چا پېره شاړي

نه‌راستنې شوې، نه راستنیږی

دزانو کډ ی‌چی‌چېرته ولاړی

---

«۱» دملکیار باباد شعر په استقبال‌چی‌وایی:

ترنک‌بهیږی ، ترنک‌بهیږی ، غاړی‌تر غاړی

«۲» مقصد د کابل سیند دی

گەسوو یو سوو یوچی ئەرشەیوی

داهەپر هەردی، داهێنگە دارێ

دارمانونو دنیا سوور انە

دچاز گەروی دی ـ دچارەهارێ

داهەدرو شول ، پێنتنو سەنو

ستر گیمو تەپی، ئەگری ریتارێ

کە داسەلی وە، کە داسی یونو

گەمحو نشوی راتو گی نارێ

١٣٦٣٥/٧/

# غزل

«پەسەر پە خاوری پا دوم ستاپە کوشەپەدر لحم»

چنوش پەپیا ایجادوم ستاپە کوشە پەدر لحم

ستر گی، هستی، عقل‌می‌در کزل‌شەرا پاتی نشول

نور بەمی‌شە پر بادوم ستاپە گوشە پەد رلحم

چې نازنینې تا په خوب کې لا لیدلی نه وي
ښار په د عشق آباد وم ستا په کوڅه به درځم
سروي اچې لاس ورغځوي د آزادۍ آسمان ته
زه به پښتون آزاد وم ستا په کوڅه به درځم
دېستون له مسکو تېر شوم خو قبول دې نه کړم
زه به (تکل) فرهاد وم ستا په کوڅه به درځم

۲۱/۴/۱۳۶۳

# تا هیرولی نشم

زړه په آهو نوکی سیځلی شمه　　　گریوان په اوښکو لند ولی شمه

سترګي په سرو لارو ګنډلی شمه　　　سردی په پښو کی ټیټولی نشم

تا هیر ولی نشم

ستا نا کردی به‌تولی هیری کړمه پـه زړه‌به‌توری ورځی تیری کړمه
څوتیری شوی څو به نوری کړمه ایری ارمان سی سوځولی نشم
تا هیرولی نشم

غرور غرور دی د سلنډونه دی داځه سفر په لارو لنډونه دی
دونډ وویش په څو بربنډونه دی پردې سړوندکی دی لیدلی نشم
تا هیر ولی نشم

درسره وبی سنم لمردی تورشی اوبه دی وچی‌شی پری‌بل‌دی‌اورشی
کنډر کنډر دی زما سوی کورشی غرور په سینه کی رټلی نشم
تا هیر ولی نشم

۱۳۶۳/۱/۲۳

# دورک منزل کو څوکی

که دی په یا دوی هغه ورځ
چی دلمر دمی ستاد سترگو په څو بلنو کسو
دشوق نڅا کوله
تامی په تال کی دعمرونو دحاصل وزانگل

مادی په دارکی دمارانودکاکل وزانگل
ما مستقبل ته دسرخی په ساده سترگو کتل
تادطاوس په رنگینو بڼکو وترلم
زما ماضی او مستقبل دی وسو
او راته پاتی غم لړلی حال شو
ستا لنډی مینی په لاسوکی دقاتل وزانگل
ما په کوڅوکی دخپل لیری ورك منزلو زانگل
او ته چی هسی پښتنه یی . . . مینی
ستاد نا دود و ، نا کردوپه وړاندی
ستاد غرور دهسك آسمان لپاره
زما یاغی طبعه بسنه کوی
څوکله سوچ کومه
چی که پښتون نه وای زه
دا ستاد دی دردو درنه خوره به
چاسو هوم منزل ته وړلی . . . ؟

۱۳ر۳ر۳ر۱۳٦

# غزل

نظر یی زما د زلفو ول ته بوته
ځکه سی ما ت قلم غزل ته بوته
دی سی کتل د لیونتوب کتو ته
ما یی نظر د ستر گوتل ته بوته

هغه زړګی چې دی منګول کې پریووت
ما دخپل لونو تاج محل ته بوته
تا به یې خیال د سا ده ګی نه ساته
ما دخونی لارو منزل ته بوته
د صبر کلی می د لمر نه ړنګ شو
یاغی ارمان می شنه ځنګل ته بوته
زه یې په قدر د ښکلا پوه نشوم
عشق می د یار په لاس مقتل ته بوته

٢/٣/١٣٦٣

# غزل

خپه کیږه مه که ګوری لیونی یم
د ناپایه مینی اور کی سپیلنی یم
د جنون غوغا سی نه به شی زایله
چی بی واکه روهیلی یم ، غرځنی یم

داورونوناوی څیری زماڅیرکی
داورین بدن لمنه اورنی یم
دهوس سیناسی د که شوه ژړیږی
راته بریښی نه چی زه هم سرګنی یم
ګه سی سر دیا ر په درکی نه ګوزیږی
عشقه معاف سی کړه په خته غرنی یم
دارمان دندرسی سات نه کړی ژیړ لمره
دویالی په غاړه سر اوی بیا لنی یم




١٣٦٣/٣/٨

# غزل

زړه په سوداشورا بهر به نشی
غاړی په وینوشوی سحر به نشی
دفریادی اوښکو فقیر ګا روانه
په بیدیا دروږمه مازیګر به نشی

...اقی په غتو غتو خه را گوري ؟
زړه دریا نوشه دی په سر به نشی
خله سی ولی دنظر په غشو
فرهاد فرهاد دیمه پرهر به نشی
وگوره دی دا رسا نونو بڼ ته
پانې بی تویی شی ثمر به نشی
زما دهیلو لمر وهلی چینه
سیلاب سیلاب به شی گودر به نشی
پښتون غرور سی راته وشر سیده
چی ویل یی خاوری ستاد در به نشی
پښتنو ستر گو زړه ته شه و گوری
دصبر پا نگه ده نظر به نشی
زما د شعر سرغلینی دانی
دغاړی هار به شی گهر به نشی

۱۳۶۳/۳/۳

# ما ته خودی

تپه شه دلمرورانگی
ما ته شه ځنګله کی دځیړی ځانګی
لیری شه دزړه غمه
نن سی دجانان په شوخو سترګو ګی

**تپه ده د شوق وړانګه**

نن مې پښتنه د نازدولې ګې لکه تل ګوډوړه نشوه
نن مې د جانان سترګو کې غم ښکاري
نن مې د آشنا د شونډو ګل کې د يرې پتې، پتې پاتې شوې
ما ته مې خودي شوه، پښتنې !

په پاکه سينه کې د استا په لاس
وسرې د جانان غمه !

١٣٦٣/٦/٢٧

«تندی د ساقی تر یو، تشی گامی شوی ځی چی ځو
ناسو یو پتنگانو د یوی سری شوې ځې چی ځو»

---

# غزل

ساره سو محفلونه او حجری شوی ځی چی ځو
سوبو پاتی یو، روانی قافلی شوی ځی چی ځو
چی رنگی میخانی شولی ناراسته یارانی شوی
د سو یو مینانو انگازی شوی ځی چی ځو

دوخت نا تار نه مینه ، نه ساقي، نه شراب پرېښوه
دا روغې میخانې وي ، ویرانې شوې ځي چې ځو
سوړ سترو بد ستانو ته دزهد څه نصیحت کړي
زاهده ! اوس سوورانې عقیدې شوې ځي چې ځو
سوړ پورته له آوازه د ستانو ترانه کړي
نیمګړې سوپه خولو کې ترانې شوې ځي چې ځو
داخو ارماني سترګې ستا خوړو ستر ګوته پاتې
ساقي لمبې د هیلو دې سړې شوې ځي چې ځو
په تورو شپو کې پلېو په همدې لارو را دروسي
رڼې کوڅې زموږ په وینو سرې شوې ځي چې ځو

۱۳۶۳ر۹ر۳۰

مترگی په لارخو ځوم

تانگو ځوتی وکړی

دشنوو یالو په غاړه

جلگو کوځی وکړی

گواگی سپرلی راغلی

دشفق توری ماړی سري ښکاری

آسمان آئینه دی :

دمرو غاتو لو دیدیاووگواگی

شاعر آشنا راته تسل راکوی

چی ((پسرلی په مسیدو ښکاری

ښکلی ځوانی په ویښیدو ښکاری))

* * *

زړه می دریاب دامی دی

چی یی ځمی په نازاسی کی خوځی

د آسمانو نو د ځښتن په لاسو

یاځی ځمی دزمانی په نڅیدو ښکاری

خو لا تر اوسه . . . .

دځو کوځوکی‌ سوری ځوونی بریښی

زه دسپرلی وو سوگی تالتوم

ته چی ورګیوی ، پیدا کیوی

ښتنی !

دځیل تاکامه ، گام‌دورکو

ورکو

ور کو یاګار وپانو کی
زه دسپرلی په ښوکی تالټوم .

*　　*　　*

سپرلی دی راشی دزمان په اوږو
څه پروا !
ګه تور ویښته دزلمیتوب په سپینیدو ښکاری
عقله احساس می راته سترې نه کړي
د یاری رنګ په بدلیدو ښکاری

کال ۱۳۶۴ . . .

# د خیال ځانګو کی

ـ ای . . .

کوچنۍ توری !

تا پر دی لویه لاره ،

څیری تور سترګی ، غنم رنګه ، پښتنه پیغله ونه لیده ؟

راته موسکی شوی څه ونه وایی اولاړه نیسی .

*　*　*

خو نهايي
همدا به سينه وي
زه څه پوهيږم
ساوړي تړي ديا غي څپو د شگوغوندي
غاړي ته ورسوي
او خپله
د او بوسينځ ته په نڅا نڅا کي دروسي ، دروسي
ما دغړه ي تکنده لمرو سوځي
او راته پاتي شي حسرت او تنده ،
تږه تياره دهيلو
*　　*　　*
لاس سي له غاړي نه راونغاړي او سينه گوي
دشنو جلگو په لوري و خوځيږو
له سخا سخ کنډو ونه
دشپيلي غږ او رمه
چي شپونکي
په ليوني نغمه کي
زما له هيلو سره سينه کوي
چي سخ راوا ړوم يوازي يمه
بيا بي اختياره په لاردروسم او پوښتنه کوم :
ـ اي کوچي توري !
تا په دي لويه لاره
چيري تور سترگي غنم رنگه ، پښتنه پيغله و نه ليدله ؟
ـ دي ليوني ته گوره !
ترژ بي لاندي دامي وغړو سپيوي .

۱۳۶۰ / ۱ / ۲۰

# سپاوون

یوه ورځ
زموږ د کلي د کلا له وره نه
نوره خندار انغله
هغه دا کوچي شوه، بیا را نغله، لیري لاړه له کوچیانو سره.

په هغه ورځ ماښام و
چې زسوړ دګلې دنار نجو بڼ کې او رو لګيد
په ګلې توره شپه شوه
ما دنار نجو دبڼ اور
دتا دسترګو په آئينه کې ولید
او مالیدل چې ستا داو ښکو له هر څاڅکې سره
دکرکې او ربا ندی او به تویيږ ی
مګر داور شغلو تر هسکه پورې لاس نه رسيږ
او زه له او ښکو نه په ډکو سترګو
کورته راو خوځیدم

*　　*　　*

ای . . . . هی !

دسوځ ګلې خلکو !

زه دادی

دخپلې سوی کلا و ره کې

دحسرت ، ښادۍ ، عصیان ، جنون او درد له درانه پیټی سره

لاس مې تر ملا ولاړیم
ما سروره خندا راوړته په وچ ډیرانه
زما دګلې دنار نجو بڼ کې اور ولګید
ګلې مې اور واخیستله
او خندا ژاړی راته
خولاهم
دسوی ګلې دکور ونو دکړکیو توری دړی
دلمر په لور خلاصې دی
۱۳۰۶۵ کال ـ دمیزان میاشت

(دادی په سخ ځه ښکاری نوګاری دی
دازما دغم دهو ښکولاری دی )
«کاکاجی صنو برحسین سومند»

# اندیښنې

ستر ګوته سی وګوره
خونباری دی ؟
وی به ، خو په ستر ګو کی بی ساري دی
چیری دی که ولیده دعشق آئینه

چیری دی که ولیده دوینو دنه

هلته زما ستر گی دی

چیری که سفر دی په بید یا وو ، و

و د ی لیده دچته چی په لارویی زخمونه وو

هلته زما زړه دی ، خپلو تولو حسر تو سره

هر چیری چی ځیر شوی د ښکلا رازته

هلته به له تا سره رو ښانه اندیښنه زما ملګری وی

ته ور پوری مه خاندی

زه څه وکم ؟

ورانی اندیښنی دی چی بیماری دی

داد سیند څردنه دی چی لار باسی

( دا زما دغم داو ښکولاری د ی )

تولو سره سمی لاری ملی شولی

لاری دخوبانو چی بی لاری دی (*)

۲۷ر۸ر۱۳۶۰

---

* ـ وصل حمزه کیږی خوبی لاری شه

لاری دخو بانو چی بی لاری د ی

( حمزه شینوا ری )

# غزل

یار سره ژوندو نه اوس نه مرګ راځي نه ته راځې
لیری سباوونه اوس نه مرګ راځي نه ته راځې

سترې مې شو ګارې ګړې اوسوی مې ګو ګارې هسوې
صبر د پښتونه، اوس نه مرګ راځي نه ته راځې

نغښتي د پښتوحيا گې نيم نظر هم نه كوي

اى دباد پاڅو نه اوس نه مرگ راځي نه ته راځې

سترگې به دې هيرى كړم خوسينې سره څه وكړم

ليرى كړه او رونه اوس نه مرگ راځي نه ته راځې

للمو د رسندونه مې دوړيو خنداور كه ده

قهر دها سونه، اوس نه مرگ راځي نه ته راځې

١٣٦٦/٥/٢٢

## د سینې سفر

دامرخا ته د غرو په شان لکه په سره ماښام کې
ته به د ګرګی د سرو یخو بریالی ولاړه یې
ونه دې،
د سرو یاقوتو ځلې

ستر گی دې تورې پەرنجو کې اسما عیله وایه
چې ځار یدوته کوم سی هوای دا سی وا ستو لی؟
دکەوی لړ زنده دیو ال
که سینی ؟
کەد براهیم لاسونو
چې دحسرت گودیو و ؟

+ * *

تەزما لاس ونیسه
زما لاسو نو کې اللەې ډډې دی
زما لاسوکی درمند ونەسرله خاور وراسی
زما لاسونو کې دجوار وتا نتی
دمرغلرو جاسی ځان نه باسی
زه به له لوډی ، تندي سرنشمه
خو کەدې سینې شوم
یا توره شپه شوم
سرېه شمه

* * *

زه دچرگ بانگه سره
دبرکندوپه لاره
ستر گی په لارو لاړیم
تەزما لاس ونیسه
درسرېوسی محه
دامر گلی ته

۱۳ ٦٦/٥/۲۳

# تەخوسرەبنکلی بنکاري

تەغومرە بنکلي بنکاری

کلە چی :

سوورەسی دەهانولە شا

حتا پەلیمو کی بنکاری

تەخو مرەبنکلی بنکاري

کلە چی

له پولادي ښوليو
سرګوتي سانديې راځي
او پهویر ژلو ستر ګو
ته را ته وینی ژاړی
ګودوغه ښکلی ښکاری
ګله چی
داو رد رانه غیر ونه
لکه نږدی تر ګیږی
او ګودر
په لپو لپو ژاړی
ته په ګودر کې خوسره ښکلې ښکاری
خو نه ، ځه ښکلې ښکا ری
ګله چی
د تیاری خونې مندروګی کی شیطا نکه سوځی
او بیر
درانه غیرونه نه وی
چی د کوچیانو زانو خوب وتښتی
کلی ځه ښکلی ښکاری
چی بیا
کوچیانی زانی راشې دلته
دآسمان ښته استر ته
ته په ګودر کې ، ګودر ګلې کی ، سپوږمی آسمان کې
کو چیانی زانی کورکی
ته خو سره ښکلی ښکاری
۱۳۶۶/۶/۱۵

# سوې سواره

نور نو کړاوندی ته د گودر له لاری نه ځمه

بیا به د کوڅی په ملاکی ستا ستر گوته نه گورم

ډیر په غاچکی نظر

نور به دی نا مه سره په شونډو کی

سراوې سوسکانه راځي

پرېږده دغنمودرمندو سوځي

پرېږده چې دګلودلي اوروانځلي

پرېږده چې ډېران شي دارسان کلي

پرېږده د ځېږيو ځنګل وسوځي

چې سوی

خوله سې خاورې کړې .... !

دلته یوه دنګه ځېړی و نړیده خاورې شوه

مځکو ته سې مه راځه

سوی سواره ده وړی نشته دی

سترګو ولی نه ژاړی په سینه پسی ؟

۱۳۶۶/۷/۱۹

# ته‌ولاړی

ته ولاړی ،
او پا که مینه دسرووینو په دریاب کی‌لاسبی
ته ولاړی ،
اووړی

د سرو لمبو په خوني غېږ کې ناڅي
ته ولاړې ،
او شپه په ورځ کې د ګناه په ګوتو
له ترسو اوښکو امېلونه پېيي
ته ولاړې ،
دلته دويرې کرکر
غنم په لورنه ،

په کارتو سوريږي

ته ولاړې ،
او د سپرلي دغړو وريځو چترو نړيده
د هسك په پراخه غېږ کې
اوس باران نه وريږي
او دريا بونوکې کربوړې ناڅي .
ته ولاړې ،
د کلي سوې خاوره
نور نو غاتول او لونګ نه زېږوي .

۱۳۶۶/۷/۳۰

# تپوس (۱)

وسی ریبل

و سی ریبل

پښوکی سی دیواچول

زه در نه تپوس کوم

نور څه غواړی . . . ؟

غواړی چی د لمر له درمنده نه درته وړی په اووړواوړم ؟

. . . سمه ده

وزرونه خوسی بیرته را !

۱۳۶۷/۳/۲۴

# شپه او تصور

په یوه سپینه پرده

د نجلی سیوری خپل کالی بدلوی

په تورو خاورو باندی

د وینو څاڅکی

## سره خالونه توربی

په سرو بار خو
داوښکو لارې ،
بیا کوښی جوړوی

د شنو باغو په زړه کې
تیاره نیالګو لره
غاښونه چیچې

د سره شفق په غېږ کې
شپه رالوېږي
او بچې زېږوي

په توروسترګو کې مې
نشه در نیږی
اورنګونه اوري

سره ، شنه ، زرغونه
تور او سپین ګلدشې سره

په لندوسترګو کې مې
شپه را لوڼیږي
او بچې زېږوي

او ستوري ورو و رو
دما ښام
داړو کې ساور کوي .

۱۳٦۸/۱۰/۳

# سفر

لاروی خپله اسپه ودروله

او ځیړی سترګی یی په شنه آسمان کی ښخی کړلي

سوچ یی وکړ :

- « لمر پر یو تلی ؤ

چی کونډې ګاونډې وساته

دتیکلیو غوټه

په پټه وسپارله

ډیری کوڅې تیرې شوې

ډیرغرونه شاته رانه پاتې شول

اوډیری دښتې

زما دآسپی تر پښو لاندې زخمی زخمی شوې

شپه ژر راورسیده

خوداسهار نوولې نه رارسی ؟ »

لاروی

ستوروته وکتل اوسوچ یې وکړ :

– « دیار ترکوره ډیر منزل پاتې دی »

شپه لاجاری وه اودلمرو رانګو

لاد تیارو له برید نه

دتیرید لووس پهخان کی نه لید

مسافر ،

په سخکه پریووت اودخوب زانګوکی وزنګیده

*   *   *

ډیری سودی تیری شوی

اوډیر کلونه : ښایی لس ، ښایی یوولس کاله

چی مسافر لهدرانه خوبه سترګی پرانیستلی

څپلی څېړۍ سترګې یې
آسمان کې خښې کړلي
لا شپه وه
اودرڼا وړانګو
لا د تیارو له برید نه
د تېرېد لووس په ځان کې نه لید
لاروی
ترخه موسکا وکړه او سوچ یې وکړ :
ـ «د یار تر کوره ډېر منزل پاتې دی»
او په ستوما نه ګامو
د ناما لومې دښتې زړه کې
په سفرو خوځېد .

۱۳۶۸/۱۱/۲

# چې تا ته گورم...

خوږې «هيلې» ته

ستا کوچنی لاسونه
ما ته د سرو گلو غنچې يادوي
چې ستا لاسونه له هغونه تش دي
ستا سينه وری کاته

-..-

ماته د مینې سمند ریادوی

چې تا په ژوندکې لا لیدلی نه دی

ستا یانه

ماته یوګړی سمسور ځنګل یادوی .

چې هر ماښام له، هغه ځایه ستا په خونه باندې

داورسکروټی اوري،

ستادا ملالې سترګې

ماته خزان یادوی

چې د سپرلی راتګ ته

لاهیڅ امیدنه لري

اوښکې دې

ماته د هپل کلي ګودر یادوی

چې اوس دماتوسنګو توقبردی

۱۳۶۸/۱۱/۵

# مسافر ته

ته ځې او ما دلته یوه وطن غمو سره یوازې پرېږدې
ته ځې او ما تیارې ته
د ولس کلنې شپې ته
دلته یوازې پرېږدې

ته ځی چی زه د لته داوښکو د پردې له شانه

د سویو سو یو د رسندونو نظاری وکړمه ؟

ته ځی اوزه د را لوید لو ستور و پل

او د شهیدی سینی قبر چیرته و پلټم ؟

چیرته د کوم مزارپه سرپاندی دیوی بلې کم ؟

ته ولاړشه . . .

خوپه پښتو باندی قسم درکوم

چی دی په هر ځای کی آسمان نظرته شین درغی

هلته په لمبرته زما سلام وایی

چی دی په هر ځای کی ګلان ولیدل

هلته بهارته زما سلام ووایه

چی په هر ځای کی چاد سینی په دود

تا ته نظر وکړ په هغه ځای کی

د دې شهیدې پاکې سینی په نوم

یو څو دیوی بلی کړه .

ورځه الله دې مل شه ...

۱۳۶۸/۱۱/۷

# درشل

لاری جا رو کړی ، ډیراورونه بل کړی !

له لارو ،

اغزی او «سری» *لیری کړی !

دخوشالی ډولونه وغږ وی !

شپه په سندرو لکه ورځ څوندی کړی !

نوی جامې واغوندی !

زما دخونی دیواله نه زوړ ټوپک راواخلی ،

او یو څو دزې وکړی !

چې دشپې ستوری دد روښاهین زما کلاته ،

له یو ه زخم[1] ، یو کفن او له یوې غوټی خندا سره

میلمه راغلی .

۱۳۶۸/۱۱/۱۰

---

* سرې- اغزن بوټی دی

---

# په مینه

نیلاب د تږی گودر          «گوچنی نیلاب ته»

نیلاب د لعلو ځلی

نیلاب د ولي لښته

نیلاب د او ښکو پرخه

نیاهب دخیال گلی کې شکلی‌مانی
لکه د گلو خپه
لکه شراب ، لکه تو دوخه ، لکه سینه په رگو کی خوځی
لکه د «توبنکه»
لکه دزا نی‌سینه
لکه خو پرخبره
لکه بی ساري نبیه
لکه د مینی‌شیبه
لکه دخرو نوهو سی
لکه سمسوره کرونده ، لکه سمسوره مینه
خمجن کاته یی‌و سوسی اوروی
زما وحشي سترگونه مینه‌غواري
زما په شونډو وکی‌خندا کری
او پښی‌سی دراتلو نکی سباء

په هتکر یوتري
خوزما غوخ لاسونه ، نه‌وررسی
دې دقیصی‌ها نکی‌ته

١٣٦٨/١١/١٦

# دا کربلا

دا کربلا ګومی بلا په وینوو لړ له ؟
دا د حسین ترګل نازکی هیلی
دلته چا د قربانی نذر کړې ؟
دیز یدهه عمر دی ؟

چې لاتر اوسه یې لاسونه گهوارو کې دماشومو هیلو پانې سوځي
اواورنې ستر گي يې
دشنو باغو نوزړه ته
دکر کې اورنده سکروټې شيندي
یزید ژوندی دی اولاسا پکی ده
لکه بلا ، لکه نیستي ، لکه بدي ،
چې شته دی،
لکه مرگ ، لکه خزان ، لکه زشتي او ناگاسي چې شته دی
یزید ژوندی دی اولا سا پکی ده
لاله سرو نونه پورنې اخلي
لالاری داړی ، درسندونه سوځي
لایې خپرو کی ژوندی زړونه دي
لاپه پردی ژبه دو یارستې سندری وایې
یزید ژو ندی دی اولاسا پکی ده
لالیونی فکر یې
د «تاج محل» رنگین خوبونه وینې
لایې خیرنې لمتر گی
د پنجرو له شا خرقې ته پاتې
داهماغه یزید دی
چې «کوه نور» یې لوټ که

سترګې یې نه سرېږي
تنده یې نه ماتیږي
یزیدژو ندې دي اولاسا پکې ده

* * *

اې . . . .
د کربلا په اور کې وریتو خلکو !
یزیدژو ندې دي اولاسا پکې ده
خو آیا . . .
په دې درنو سرو کې
په دې ځیرو ساغزو کې
د دې بلا د شنډ و لو کوم آیت شته . . .
که نه . . . ؟

۱۳۶۸ کال د سنبلې سیاشت

# نجلی، تکه او «سیرنی»

تندر را کوزشو

اوغر وربیده

په نجلی هیخ و نشول

تندر را کوزشو

(سپړنیو) او رسیږو ونه تیت کړل
خودالا هسکه غاړه لمرته گوری
تندر راکوزشو، تکه ولویده، غرور پیده
او سپړنیو د نجاى جنازه
په خپلو تیتو او رسیږونو یووړه
اواو رسیږونه نورهم تیت شکاره شول
خو . . .

دالا هسکه غاړه

لمرته گوری

۱۳٦۸/۸/۱۱

# زیری

لکه اور څوندی توده وه

سره غېږ کې مې خوره شوه

تورو سترګویې په زړه کې

د کابل ماښام رایاد کړ

هسې ځړ ، هسې بې سټورو
هسې سوراو ډك له وينو
ورنه پوښتنم :

څنګه سره يې . . . ؟

يوه غلې شان مو سکا کې راته وايي :
- دځګرې له کلی را غلم !
اوس مې پرېږ دهچې ويده شم
غم او خوب مې ز نګوينه

+ + +

- دهويل سل ځلې يې جوړ کړه بيا به يې وران کړم
ساويل سل ځلې يې وران کړه بيا به يې جوړ کړم
خو که لاس مې درته بر شو
فقط يو واربه دې کورهسې اوار کړم
چې تاريخ به له هغې شيبې شروع شي
- بيا څنګه . . . ؟

- بيا نو هيڅ
لا تاريخ هغه تاريخ دی
لا جهان هغه جهان دی
لا کورګی مې هسې وران دی
لا داور په خير توده يم
لا دجنګ په وينو سره يم
خو که لاس مې ورته برشو
فقط يو واربه يې کورهسې اوار کړم
چې تاريخ به له هغې شيبې شروع شي .

۱۳٦۸ کال دعقرب میاشت

# تپوس
## (۲)

غم دی سوکه سوکه په زړه باندی در ننیوزی
مینی !
زړه دی ناراسته وخت کی تا اوکه وطن وژاړم
ته ولاړی ،

او دعالم دبلی غاړی بندیوانه شولی

هلته چی :

رنی او به رنو چینو کی خوټی

خو ګودرونه نشته

ځلمی او پیغلی شته ، واره زاره شته

خو هلته مینی نشته ، ګلی نشته

او په دی خدای پوهیږی

زه او ته به

په دی خیرن جهان کی

بیا سره ولیدی شو . . .

که دواړه لمر ، سپوږمی شوو ؟

۱۳۶۷ر۸ر۱۳

# داغ

تاپه وروستی شیبه کی شکل نه کړمه
او دادی ومې لیدل
چې انسان ژرله خاطرونه وزی
خوسینه نه هیریږی

او او ښکي نه هیریږي

* * *

سا ته به څه ووایی

کله چې

څوکاله وروسته یوه تورسا ښام کی

یا یوه ژیړه غرسه

زسوړه ستر گی سره ونښلی

او کسی ولاسبی دیادد ریاب کی

زه به دی ستر گوکی بهار سره غربت ووینم

خوته به څه ووینی . . . ؟

ته به سی ستر گوکی کنډر کنډر وطن ووینی

چې گودروکې یی څپې څپې بهیږی وینه !

۱۳۶۷/۸/۱۳

# سپېتانه

سپې پوهېده چې شپونکي،
دې ورشکاري

هغه لېوه ته‌چې رمه کې څري
نه ورېا څېړي او نه ګوري ورته

په ځګکه پروت دی او لکی خوځوی
او خپلی شونډی څټی
لیوه‌رسه کی دوړ غوسو لوکوی او در وسی
سپی لا لکی خوځوی . . .

۱۳۶۸/۸/۱۵

# وینې

دچتې پېغلې سنګې
له لوړې کمره نه ولوېد
سنګې کودې کودې شو
او نجلۍ بیا وژړل

چې په منګې ګې له او بو سره خوشالګې وینې
يوه شپه شوي . . .
د تورو خاورو زړه ته ننوتې .

١٣٦٧/٨/١٨

# تادا

راشی اووګوری خزان ددی سپیدار په پانوڅه ونه کړل
راشی اووګوری
ښکاری دمسافر وزانو
په زړو کی څو سره چړې خښی کړلې

راشي اوو ګوري

چي شپې له ناز و لو ستورو
څه اسېلونه جوړ کړل
راشي اوو ګوري

د جېل په وېښو پټې خونې
چي «آزادي» پکې ډو بيږي شتنکي وهي
راشي اوو ګوري

د يار ستر ګوته
چي په ژړا ژړا سکروټې شولې
راشي اوو ګوري کابل ته

چي اور بل کې يي
اور ونه بل دي
راشي اوو ګوري زما ګوګل ته
څه ارمانونه پکې سوځي اوسري
راشه او ګوره کليوال ته،

په پردي ژبه سندرې وايي
د مېړني تبر دو يار سندري
راشي اوښه و ګوري

۱۳٦۸/۸/۲۸

# نوم ورکی شاعر

هیڅاونه ویل چی دا څوک و

دا نوم ورکی شاعر

چی له یو ښرکه تر بل ښرکه پوری

دخپلي خونيدا خواشيني کړکي نه پرانيزي

هیڅاو نه ویل چې دا څوك ودانوم ورکی شاعر
چې ورځ کی سل ځلې رغېږي او سري
او دښار ښکلی نجونی نه ښکلوي
چې کله خاندي لیونو غوندي شي
چې کله ژاړي بارا نو غوندي شي
هیڅاو نه ویل دانوم ورکی شاعر
دمنی تورو شپو کی څه لټوی
او دخزان منګولی
دشنو خیریو داوړ دو ځنو په لته کی په څه لټوی
څوك وایی سرتودوی
څوك وایی پر یووت دګناه بستر کی
او دپیغلو تو اور بلو کی دبنګ بوټی تومبی

* * *

څو ...
دا نوم ورکی شاعر
نه چیري سرتو دوی
نه دګناه بستر کی
دچتو پیغلو او ربلو کی دبنګ بوټیتو مبی
هو !
دا نوم ورکی شاعر
دتاندو هیلو ځوانیمرګو
او دټودوینو
دتوییډ وغمجنی ساندی وایی

او دساړه خوږلن په زړه کې سرې سکروټې ګوري
او دخپل پلار په ځیر آسانه خپله ماور کوي
او هیڅ ترې نه پاتیږي
نه سرې سکروټې نه غمجنې ساندې
او نه دېنګو بوټي
تش یوځو سراوي سصري
چې یو کال وروسته ترسا ګورته دروسي .

۱۳۶۸/۹/۱۸

# زما سینه

زما سینه یو وطن دی
چی ما ښام یی یوه لویه دنیا غم دی
چی سند روکړی یی یو باران ژړاده
زما سینه یو وطن دی

ننګرهار يې باغي ستر ګي
بدخشان يې لعلي شونډې
او شمشاديې ونګه ونه
زما سينه يو وطن دی
انګې يې زما دګلې دانارو ښايسته بن دی
اوغروريې دپامير له هسکه لوړدی
را روانه لکه زانه
دکابل له پاسه دروسې
دجنوب تود وجلګوته
زما سينه يو وطن دی
له شماله ترجنوبه
له ختيځه تر لويديځه
دسروو ينو ،زړواو ښکو
پکې خوړشانتې سيلاب دی
توري زلفې يې په کليو
دظلمونو کيسې وايي
زما سينه يووطن دی
يو وطن دی
دزخمي ويشتلي زانې يا زخمي هيلې سينه کې
١٣٦٨/٩/٢٠

# که ...

حیف ...
که دا توده غیږه
ژمی کی

دستړی مسافر غیږه توده نه کړی

حیف که دا توده سینه

ستړو سروند و کی ساونه باسی

دریغه که دا زړکی غرځنی سترګی

شم کی دسپرلی دمرګ ونه ژاړی

دریغه که له سینی نه انکار وکړی

حیف که دپردی په لوری وګوری

دریغه که داسپینی سرسری لیچی

لته دشهید کی تر ځنګلو سری په وینوشی

حیف که داتن غوغا له دی لیچونه تشه وی

دریغه که نکریزی پنجاره وونه ځوله وانخلی

دریغه که دنیا له سینی تشه وی

دریغه پسرلی که بیا زرغون نشی

ونی او نیالګی که بیا ژوندی نشی

دریغه که ته ځپله سپرلنی خندا

داچی دغوټی پرشوند وهم ناځی

زما له سترګو پته کړې

زه به په داهسی جهان اور دکرکې وشیندم

لاس کی به مشعل دعلاالدین وا خلم

زړه به می دکرکې خزانه کړم دی جهان ته

جهانسوز غوندی

۱۳۶۸/۹/۲۷

# غزل

مەرا وڕە خێی دعصیان مە راوڕە
وختە دخو نکار ودوران مەراوڕە
بندی کرە دخم سند ری بندی گرە
زڕونوکی دماتو توپان مە راوڕە

پر بە دە ! دەستم خبری هەری ئی
کپتە دخود بو آسمان مە را ورە
وَرانی موپەسرو وینو ودانی کری
سمۆ کی دوینو دوران مەرا ورە
و ختە لە خو نکا رو سرە مل نشی
ورحو کی دتور و شپو شانمە راورە
تنە پنجرو کی پنجری مو شو ی
اوسَ را تە پەورە کی پاسبان مەراورە
تشو تشو خونو کی خای مەخوارە
چورو گنلی والو تە تالان مەراورە

( . . . . )

# د خزان لمن

داتا ندی یوري څېرې

اودا مور مړې څانګې

د کومې مینې د زیا رت د پا سه

د کوم شهید ارمان د رواح په نامه

لاس په دعا څخوي

چي دخزان سوړه لمن کي يي دژيړو پاڼو

پورتې وغوړاوه .

۲۱ر۸ر۱۳۶۷

# سهار

ګرد ګناه په زړه کې
ددردانځور په ځاټو
تته رڼا په سترګو
خزان ځنګل په غېږو

ما ته توبه په ژبه

څو ته شرابو باندې څخوند وهمه ۱

ای ورو ره !

زه څه خپر شوی چې دشپې په میخانه کې ووهه ؟

۲۲ ر ۱ ر ۱۳٦۸

# د نارنج گل

دښمن خوني ښېرو
د چتې پېغلې پرمرې سینه کې
د سرو نارنجو ته لاس غځاوه
او پېغله وترهېده

ستومانه سیند بستر کې په غږ سبا غږ سبا غاښونه چیچل
او د کابل د عیاشیو او ګناه خیرې یې
خپلو څپو کې مروړل او سینځل
پیغلې له تندې نه د وینو یاله وخندله، ویې پوښتل :
- کابله ! چیرته درومې . . . ؟
سیند غاړه هسکه کړه او وخوځیده :

- ځم چې د وینو کاروان
د نارنج بڼ ته یوسم
ځم چې د ژوند رڼایی
د مرګ مدفن ته یوسم

* * *

شپه رانږدې شوه، پیغلې کریږه وکړه
د سیند بڼ ته یې د شپې څپې و لاس ځغاوه
څو د شپې مخ ته له ډیرې کرکې لاړې تو کړې .

* * *

د شپې منګولو کې د پیغلې د ګریوان رنه تنې ها تی شوه
او سیند د پیغلې جنازه د سرو نارنجو بڼ ته وسپارله
چې د را تلونکي پسرلي د نارنج ګل تری جوړ شي .

سروبي - ۱۸/۳/۱۳۶۸

## خپا ند هسینده

خپی که وی همدو سره
که واوری وی همد وسره
باران که وهمد وسره
که اوښکی وی همد وسره

گه وینی وی‌همد وسره
چپا نده یاغی سینده !
له گوسه دی‌داز وراود اسستی‌ده ؟

٢١/٣/١٣٦٨ ـ سروبی

# وروستي نغمې

پښتون دبريد له کرښې پورې ووت

اوو يې سسل

او دتېر له ياقوتي سېال له زخم نه يې

دګاته وينو غوړوشکوداري وکړې

پښتون اری ښیری ته ورته په نمجنه سځکه وغوړیده

او پانی ورژیدی

آسمان شیبی ، شیبی پری وژړیده

او سپوږمی

د توروریځوله کیږدی نه سر دبانای نه کړ

دماښام سری لمنی

دتوری شپی پوړنی

په خپل خاورین اندام راپری ایسته

اوشونډی یی سری سری شوی

او سرگ له ستورونه وطن ته ا سیلونه پییل

غرونه غرورغرور شول

وسیند نغمی نغمی شو

داد پښتون غوږوکی

دژوند وروستی نغمه وه

خوسیند روان و

او وروستی نغمی لا هماندی ویلی

د پښتنو غوږوکی

۱۳٦۸/٥/۱۱

# اختر

وطن کنډ ر کنډر دی کای اوراخلی په اور
اختر دی، اوځوانان قربانی کیږی په هر لور
زه تا ته دی اختر کی هیڅ تحفه راوړلی نشم
زما نیمزالی سینی! کر کی وران کړزما کور.

# د کابل زړه کی

له لیری کلیو راغلم د کابل زړه کی دیره شوم

راوخوځیدم راغلم او په خاورو کی ایره شوم

د درد ښپو کی آه شوم وروسته پټه ښان ژړاشوم

په چیغو کی فریا دشوم ، فریا دونو کی ناره شوم

# څه ته راغلو؟

له خاورونه راپورته شوو او خاوروکی ویده یو ،

له هیڅ نه راجلاشوو بیرته هلته ور رسیږو و

په منځ کِی تو له لا ره له در دو آ هو نه ډ که

پوه نشو چه ته راغلو ، څه ته بیر ته ورستنیږو ؟

# وطنه



نا ښکلی بر یښی ستا ښکلا ته وا ړه ښکلی ښکلی

داستا د عظمت نښی دی په درست جهان کی ځلی

حیران یم دا ددو وو ر څو هوښیار اونا زولی

په کوم ایمان دکر کی تیږی ولی ستا په ګلی



احمدالله تکل د مرحوم امان الله زوی د

میاني ننګرهار د نرخ د علاقه داری امروند د

صدمردي په کلي کې زیږیدلی دی.

لومړنۍ زده کړې يې د کابل د حبیبیې او شیرشاه سوري په

ښوونځیو کې، او لوړې زده کړې يې د کابل پوهنتون د هنرونو

د پوهنځي د تیاتر په څانګه کې سرته رسولي دي.

د احمد تکل شعرونه له دیارلس سوه دوه شپېتم کال نه را

په دېخوا د هیواد په مطبوعاتو کې خواره واره چاپ شوي دي.

نوموړی شاعر او ويښت کلنی دی او دا يې د شعرونو

لومړنۍ مجموعه ده.